## شینوارو کې ۱ ټانک، ۱ موټر تخریب او ۴ عسکر مړه اوژوبل شول

دپروان ولایت د شینوارو ولسوالۍ په اشتر شهر دره کې د ګډ دښمن په موټریز کاروان وسلوال برید ترسره شو، په برید کې ۴ عسکر و ته مر ګ ژوبله واوښته اوپه دې سربېره ۱ ټانک او ۱ رېنجر موټر پوره تخریب شول. ۰۵- ۱۲- ۲۰۱۳

## شینوارو کې د ګډ دښمن په ګزمه برید ترسره شو

د پروان ولایت د شینوارو ولسوالۍ په اشتر شهر سیمه کې د ګډدښمن په عسکرو وسلوال برید ترسره شو، دبرید په مهال ۱ زغروال ټانک پوره تخریب شو او په دې سربېره عسکرو ته هم درنه مر ګ ژوبله واوښته. ۰٦- ۱۲- ۲۰۱۳

## جبل سراج کې پوسته تر برید لاندې راغله

دپران ولایت د جبل سراج ولسوالۍ د ګلبهارپل خشتي په سیمه کې د دښمن په پوسته وسلوال برید ترسره شو، د برید په مهال د پوستې ودانۍ زیانمنه او د امنیت د مدیر موټر په بشپړه توګه ویجاړ شو. ۰۸- ۱۲- ۲۰۱۳

## کوه صافي کې ماین ټانک ویجاړ او ۳ یرغلګر ووژل

د پروان ولایت دکوه صافي ولسوالۍ په ولو ناو سیمه کې د یرغلګرو عسکرو ټانک په ماین والوزول شو، په چاودنه کې ټانک ویجاړ، ۳ یرغلګرمړه ۲ نور مرګوني ټپیان شول. ۱۱- ۱۲- ۲۰۱۳

## کوه صافي اشغالګرو لویه قرارګاه تخلیه کړه

د پروان ولایت د کوه صافي ولسوالۍ په مرکز کې اشغالګرو عسکرو خپله لویه قرارګاه د اسلامي امارت د سیمه ییزو مجاهدینو د مسلسلو بریدونو او چاودنو له امله تخلیه کړه او بالاخره ولایت ته وتښتېدل. ۱۳- ۱۲- ۲۰۱۳

## سیاه ګرد کې ۲ عسکر مجاهدینو سره یوځای شول

دپروان ولایت د سیاه ګرد ولسوالۍ په اړونده سیمه کې ۲ تنه عسکر (دلاور او دانه ګل) د دعوت او ارشاد کمیسیون د دعوت او سیمه ییزو مجاهدینو د هڅو په پایله کې له مجاهدینو سره یوځای شول. ۱۴- ۱۲- ۲۰۱۳

## د بګرام هوایي اډه په میزایلو وویشتل شوه

دپروان ولایت د بګرام په هوایي اډه توغندي وتوغول شول چې د یرغلګرو په هستوګنځای کې ولګېدل، د برید له امله دښمن ته مالي اوځاني تلفات واوښتل خو په هکله یې شواهد نه دي ترلاسه شوي. ۲۲- ۱۲- ۲۰۱۳

## سیاه ګرد کې پوسته په هشتاددو وویشتل شوه

دپروان ولایت د سیاه ګرد ولسوالۍ په ګواره سیمه کې د دښمن پوسته د هشتاددو په ۴ مرمیو دقیق وویشتل شوه چې له امله یې دښمن ته درنه مرګ ژوبله اومالي تلفات واوښتل. ۲۲- ۱۲- ۲۰۱۳

## سیاه ګرد کې ۲ اربکیان مجاهدینو سره یوځای شول

د پروان ولایت دسیاه ګرد ولسوالۍ په چیلان دره کې ۲ تنه اربکیان (محمد رحیم او محمد امان) د جلب او جذب کمیسیون د دعوت په نتیجه کې له مجاهدینو سره یوځای شول. ۲٦- ۱۲- ۲۰۱۳

## سیاه ګرد کې اربکی قومندان (ملا) ووژل شو

د پروان ولایت دسیاه ګرد ولسوالۍ په بازار کې اربکی قومندان چې په ملا یې شهرت درلود، د چریکي مجاهدینو له خوا وویشتل شو چې ځای په ځای ووژل شو. ۲۷- ۱۲- ۲۰۱۳

## سیاه ګرد کې اربکیانو دوژل شوي قومندان کسات له خلکو واخیست

د پروان ولایت په سیاه ګرد ولسوالۍ کې اربکیانو د خپل وژل شوي قومندان (ملا) له وژلو وروسته د عامو خلکو په کورونو یرغل ور ووړ چې له امله یې زیاتو خلکو ته مالي زیانونه واوښتل او یوتن کلیوال مولوي صاحب محمد اعظم ټپي شو، خبر وایي په سیمه کې میشتو مجاهدینو په راغلو اربکیانو وسلوال برید وکړ

چې په ترڅ کې يې اربکيانو ته مرګ ژوبله واوښته او بیر ته خپلو پوستو ته په تېښته بریالي شول. ۲۷- ۱۲- ۲۰۱۳

**کوه صافي کې په پوسته برید ترسره شو**

د پروان ولایت د کوه صافي ولسوالۍ په ګوګامندی سیمه کې د دښمن په پوسته وسلوال برید ترسره شو، د برید له امله د پوستې ودانۍ زیانمنه شوه خود مرګ ژوبلې په اړه دقیق معلومات نه دي ترلاسه شوي. ۲۸- ۱۲- ۲۰۱۳

**پروان مرکزته څېرمه په بیس برید ترسره شو**

د پروان ولایت د مرکز چاریکار و په جنګل باغ سیمه کې د اجیري اردو په بیس وسلوال برید ترسره شو، د برید له امله د بیس ودانۍ ته په زیان اوښتو سربېره دښمن ته مرګ ژوبله هم واوښته. ۲۹- ۱۲- ۲۰۱۳

**د بګرام هوايي اډه په میزایلو وویشتل شوه**

دپروان ولایت د بګرام په هوايي اډه ۲ میزایل وتوغول شول چې د یرغلګرو په هستوګنځای کې ولګېدل، میزایل په داسي حال کې وتوغول شول چې په اډه کې کرسمس لمانځل کېده، د برید له امله دښمن ته د اوښتو تلفاتو په اړه شواهد نه دي ترلاسه شوي. ۳۱- ۱۲- ۲۰۱۳

## پکتیا

**زرمت کې چاودني ۳ عسکرو ته مرګ ژوبله واړوله**

د پکتیا ولایت په زرمت ولسوالۍ کې د ګردېز او زرمت دعمومي سرک ترڅنګ داجیري اردو په ګزمه درنه چاودنه وشوه، چاودنې ۲ عسکر مړه او بل ژوبل کړ. ۰۳- ۱۲- ۲۰۱۳

**پکتیامرکزته څېرمه په موټرچاودنې ۳ عسکرووژل**

د پکتیاولایت مرکزګردېز ته نږدې په خټاوه سیمه کې داجیري اردو په رینجر موټر درنه چاودنه وشوه، چاودنې موټر تخریب، ۳ تنه عسکر مړه او ۳ یې مرګوني ټپیان کړل. ۰۳- ۱۲- ۲۰۱۳

**ځاځي اریوب کې ۲ عسکر مجاهدینو سره یوځای شول**

دپکتیاولایت د ځاځي اریوب ولسوالۍ د روقیان په سیمه کې ۲ تنه عسکر د دعوت او ارشاد کمیسیون د دعوت په برکت له مجاهدینو سره یوځای شول، عسکرو ۲ میله وسله هم مجاهدینو ته تسلیم کړه. ۲۰۱۳-۱۲-۰۵

**ځاځي اریوب کې ماین ۲ اربکیان ټپیان کړل**

د پکتیا ولایت دځاځي اریوب ولسوالۍ په علي سنګي سیمه کې د اربکیانو په پلې ګزمه چاودنه وشوه چې له امله یې ۲ تنه اربکیان سخت ژوبل شول. ۰۶- ۱۲- ۲۰۱۳

**سیدکرم کې داجیري اردو عسکرووژل شو**

د پکتیاولایت په سید کرم ولسوالۍ کې داجیري اردو یو عسکر محمد امین په غلچکي برید کې ووژل شو. ۰۷- ۱۲- ۲۰۱۳

**جاني خېلوولسوالۍ په ودانۍ برید، ۳ پولیس ټپیان شول**

د پکتیا ولایت دجاني خېلو ولسوالۍ په ودانۍ وسلوال برید ترسره شو، د برید له امله ۳ پولیس ټپیان شول او د ولسوالۍ ودانۍ هم پوره تخریب شوه. ۰۸- ۱۲- ۲۰۱۳

**احمدابا کې په موټرچاودنې ۴ پولیس مړه اوژوبل کړل**

دپکتیا ولایت د احمدابا ولسوالۍ په کوزو پیروز خېلو سیمه کې د پولیسو رینجر موټر په ماین والوزول شو، په چاودنه کې رینجرویجاړ، ۱ تن پولیس مړ او ۳ نور یې سخت ژوبل شول. ۰۸- ۱۲- ۲۰۱۳

**پکتیامرکزته څېرمه چاودنې دجاسوسي اداري ۳ کارمندان ووژل**

د پکتیاولایت مرکز ګردېز ته نږدې دخوست په لین باندې د جاسوسي اداري په کارمندانو درنه چاودنه وشوه، چاودنې ۳ تنه استخباراتي کارمندان مړه او بل سخت ژوبل کړ. ۰۹- ۱۲- ۲۰۱۳

**پټان کې پولیس په دراز کوف وویشتل شو**

د پکتیا ولایت دپټان ولسوالۍ په شپولي سیمه کې یو سرحدي پولیس په دراز کوف وویشتل شوچې ځای په ځای ووژل شو. ۰۹- ۱۲- ۲۰۱۳

**پټان کې په قرارګاه او پوستو بریدونه وشول**

دپکتیا ولایت دپټان ولسوالۍ په شپولي او اینځر کي سیمو کې ددښمن په قرارګاه او پوستو د وسلوالو بریدونه ترسره شول، په بریدونو کې ودانیو ته پوره زیانونه واوښتل او یکې مېشتو عسکرو ته هم درنه مرګ ژوبله واوښته. ۰۹- ۱۲- ۲۰۱۳

**پټان کې په پوستو او قرارګاه برید زیان اړولی**

دپکتیا ولایت د پټان ولسوالۍ په شپولي سیمه کې د سرحدي پولیسو په قرارګاه او پوستو بریدونه ترسره شول، په بریدونو کې ۱ پولیس مړ او بل سخت ژوبل شو، په دې سربېره ودانیو ته هم پوره زیانونه واوښتل. ۱۱- ۱۲- ۲۰۱۳

**احمداباکې په موټرچاودني ۴ پولیس مړه اوژوبل کړل**

د پکتیا ولایت د احمدابا ولسوالۍ په کوزو پیروز خېلو سیمه کې د پولیسو په رېنجر موټر چاودنه وشوه ،چاودني موټر پوره تخریب کړ،۱تن پولیس یې وواژه اواو ۳ نور یې سخت ژوبل کړل. - ۲۰۱۳ ۱۱- ۱۲

**پټان کې په قرارګاه اوپوستو بریدونه وشول**

د پکتیاولایت د پټان ولسوالۍ په شپولي او اینځر کي سیمو کې د سرحدي پولیسو په قرارګاه او پوستو وسلوال بریدونه ترسره شول، دبریدونوله امله دښمن ته درانه مالي اوځاني تلفات واوښتل. ۱۲- ۱۲- ۲۰۱۳

**زرمت کې د پولیسو ګزمه تر برید لاندي راغله**

دپکتیاولایت دزرمت ولسوالۍ په کوهي سیمه کې د پولیسو په ګزمه وسلوال برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته داوښتي مرګ ژوبلي کره شمېره نه ده څرګنده شوې. ۱۲- ۱۲- ۲۰۱۳

**زرمت کې دبرید په مهال ۴ عسکروته مرګ ژوبله واوښته**

د پکتیاولایت د زرمت ولسوالۍ په پایلوچو سیمه کې د اجیري اردو په ګزمه وسلوال برید ترسره شو، په برید کې ۳ عسکرو خپل ژوند له لاسه ورکړ اوبل مرګوني ټپي شو. ۱۲- ۱۲- ۲۰۱۳

**ځاځي اریوب کې دجاسوسي اداري کارمندمجاهدینوسره یوځای شو**

دپکتیاولایت د ځاځي اریوب ولسوالۍ په رقیان سیمه کې په اصطلاح د ملي امنیت یو کارمند د جلب او جذب کمیسیون د دعوت په برکت له مجاهدینو سره یو ځای شو، دیوبل خبر له مخې د یادي ولسوالۍ په علي سنګي سیمه کې د پولیسو په ګزمه وسلوال برید ترسره شو چې درنه مرګ ژوبله ورته واوښته او یو رېنجر موټر تخریب شو. ۱۲- ۱۲- ۲۰۱۳

**جاني خېلو کې په موټرچاودني ۳ پولیس ووژل**



د پکتیا ولایت دجاني خېلو ولسوالۍ په اړونده سیمه کې د پولیسو رېنجر موټر په ماین والوزول شو، چاودني ۳ پولیس ځای په ځای ووژل او ۴ نور یې مرګوني ټپیان کړل. ۱۳- ۱۲- ۲۰۱۳

**لجه منګل کې په پولیسو بریدوشو**

د پکتیا ولایت د لجه منگل ولسوالۍ مرکز ته نژدې په پولیسو وسلوال برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته مرگ ژوبله واوښته خو کره شمېره یې نه ده څرگنده شوې. - ۱۲- ۲۰۱۳ ۱۵

**جاني خېلو ۲ اربکیان مجاهدینو سره یوځای شول**

د پکتیا ولایت په جاني خېلو ولسوالۍ کې ۲ اربکیان (شکر الله او مندو) د دعوت او راشاد کمیسیون د دعوت په برکت له مجاهدینو سره یوځای شول. ۱٦- ۱۲- ۲۰۱۳

**جاني خېلو ولسوالۍ ودانۍ تر برید لاندې راغله**

د پکتیا ولایت د جاني خېلو ولسوالۍ په ودانۍ وسلوال برید ترسره شو، دبرید په ترځ کې ۳ پولیس مرگوني ټپیان شول او د ولسوالۍ ودانۍ هم پوره تخریب شوه. ۱۷- ۱۲- ۲۰۱۳

**جاني خېلو ولسوالۍ ودانۍ تر برید لاندې راغله**

د پکتیا ولایت د جاني خېلو ولسوالۍ په ودانۍ وسلوال برید ترسره شو، د برید له امله ودانۍ تخریب شوه خو دمرگ ژوبلې کره شمېره نه ده څرگنده شوې. ۱۸- ۱۲- ۲۰۱۳

**پکتیا مرکز ته څېرمه ماین دجاسوسي اداري د ۵ کارمندانو ژوند واخیست**

د پکتیا ولایت گردېز ښار ته نږدې د جاسوسي اداري په کارمندانو په داسې حال کې دماین چاودنه وشوه چې د رېنجر موټر په شاوخوا راټول وو، چاودنې ۵ تنه کارمندان مړه او یو بل سخت ژوبل کړ. ۱۸- ۱۲- ۲۰۱۳

**پکتیا مرکزته څېرمه په موټرچاودنې ۳ پولیس ټپیان کړل**

دپکتیاولایت مرکز گردېز ته نژدې د کابل گردېز د عمومي سرک تر څنگ د پولیسو رېنجر موټر په ماین والوزول شو، په چاودنه کې موټر پوره تخریب شو او ۳ پولیس پکې ژوبل شول. ۱۸- ۱۲- ۲۰۱۳

**پکتیا مرکزته څېرمه ماین د ۲ عسکرو ژوند واخیست**

د پکتیا ولایت مرکز گردېز ته نژدې په خهاوه سیمه کې د اجیري اردو په پلي گزمه د ماین چاودنې ۲ عسکر مړه او گڼ نور عسکر ټپیان کړل. ۱۹- ۱۲- ۲۰۱۳

**جاني خېلو کې داربکي قومندان موټر په ماین والوت**

دپکتیا ولایت د جاني خېلو ولسوالۍ په بلزیو سیمه کې د اربکي قومندان عثمان شاه موټر په ماین والوزول شو، په چاودنه کې موټر بشپړه توگه تخریب شواوپکې ناستو کسانو ته مرگ ژوبله واوښته. ۱۹- ۱۲- ۲۰۱۳

**جاني خېلو کې ۷ اربکیان مجاهدینو سره یوځای شول**

د پکتیا ولایت په جاني خېلوولسوالۍ کې ۷ تنه اربکیان( لاهورجان، محمد عمر، حلیم نور، خالق نور، عیدمرجان او خان میر ) د جلب او جذب کمیسیون د دعوت په پایله کې د اسلامي امارت له مخالفت نه لاس په سر او له مجاهدینو سره یوځای شول. ۲۱- ۱۲- ۲۰۱۳

**ځاځي اریوب کې ماین یو اربکی وواژه**

د پکتیا ولایت د ځاځي اریوب ولسوالۍ په علي خېلو سیمه کې د اربکیانو په پلي گزمه د ښځ کړل شوي ماین چاودنې ۱ اربکی وواژه او گڼ نور اربکیان یې ژوبل کړل. ۲۳- ۱۲- ۲۰۱۳

**پکتیامرکزته څېرمه ۲ عسکرووژل شول**

د پکتیا ولایت مرکز گردېز ته نژدې په ابراهیم خېلوسیمه کې د اجیري اردو دوه تنه عسکر چې په سیمه کې په تالاشي بوخت وو د مجاهدینو د چریکي گروپ له خوا وویشتل شول او ځای په ځای ووژل شو. ۲۴- ۱۲- ۲۰۱۳

**پکتیامرکزته نژدې ماین د یوعسکر ژوند واخیست**

د پکتیا ولایت مرکز گردېز ته نژدې د شیخانو او چوڼۍ تر منځ سیمه کې د اجیري اردو په پلي گزمه دماین چاودنه وشوه، په چاودنه کې د اجیري اردو یو عسکر مړ او گڼ نور عسکر ژوبل شول. ۲۴- ۱۲- ۲۰۱۳

**جاني خېلوولسوالۍ ودانۍ تر برید لاندې راغله**

دپکتیا ولایت د جاني خېلو ولسوالۍ په ودانۍ د سپکو او درنو وسلو برید وشو چې په مهال یې دښمن ته درنه مرګ ژوبله او مالي تلفات واوښتل. ۲٦- ۱۲- ۲۰۱۳

### جاني خېلو ولسوالۍ ودانۍ په هاوان وویشتل شوه

د پکتیا ولایت د جاني خېلو ولسوالۍ ودانۍ د هاوان په ۳ مرمیو دقیق وویشتل شوه چې له امله یې ودانۍ زیانمنه خو د مرګ ژوبلې په اړه شواهد نه دي ترلاسه شوي. ۲۷- ۱۲- ۲۰۱۳

### پکتیا مرکز ته څېرمه په موټر چاودني د ۴ پولیسو ژوند واخیست

د پکتیا ولایت مرکز ګردېز ته نژدې په پیرباغ سیمه کې د پولیسو په رېنجر موټر د چاودني له امله موتر ویجاړ، ۴ تنه پولیس مړه او ۲ نور پولیس سخت ژوبل شول. ۲۹- ۱۲- ۲۰۱۳

## پکتیکا

### خیر کوټ کې د اربکیانو پوسته تر برید لاندې راغله

دپکتیکاولایت دخیر کوټ ولسوالۍ په ملیزو سیمه کې داربکیانو په پوسته وسلوال برید تر سره شو، په برید کې دښمن ته داوښتي زیان په اړه معلومات نه دي ترلاسه شوي. ۰۱- ۱۲- ۲۰۱۳

### یحی خېلو کې اربکی له مجاهدینو سره یوځای شو

دپکتیکاولایت دیحی خېلوولسوالۍ په غیب خېلو کلي کې یو تن اربکی (اسلم) داسلامي امارت له مخالفت نه لاس په سر اوله مجاهدینو سره یوځای شو. ۰۱- ۱۲- ۲۰۱۳

### اورګون کې ۱ موټر تخریب او ۴ عسکر ووژل شول

د پکتیکاولایت د اورګون ولسوالۍ په دره سیمه کې د اجیري اردو او پولیسو په ګزمه وسلوال برید تر سره شو، په برید کې ۴ عسکر مړه او ۳ نور سخت ژوبل شول، په دې سربېره ۱ رېنجر موټر تخریب شول. ۰۴- ۱۲- ۲۰۱۳

### سر حوضه کې چاودني داجیري اردو عسکر وواژه

د پکتیکاولایت دسروبي ولسوالۍ په شوی کمر سیمه کې د اجیري اردو په پلي ګزمه دماین چاودني ۱ تن عسکر مړ او ګڼ نور عسکر ټپیان کړل. ۰٦- ۱۲- ۲۰۱۳

### جاني خېلو کې په دوو پوستو بریدونه وشول

د پکتیکا ولایت دجاني خېلوولسوالۍ په خنجکو سیمه کې د اربکیانو په دوو پوستو وسلوال بریدونه تر سره شول،دبرید له امله د پوستو ودانیو ته په زیان اوښتو سربېره دښمن ته درنه مرګ ژوبله واوښته. ۰٦- ۱۲- ۲۰۱۳

### زیړوک کې د اربکیانو موټر په ماین والوت

دپکتیکاولایت د زیړوک ولسوالۍ په ورزانه سیمه کې د اربکیانو موټر په ماین والوزاول شو، په چاودنه کې موټر تخریب، ۱ اربکی مړ او بل سخت ژوبل شول. ۰٦- ۱۲- ۲۰۱۳

### جاني خېلو کې ماین اربکی قومندان ټپي کړ

دپکتیکا ولایت دجاني خېلوولسوالۍ په سروبلزو سیمه کې د اربکیانو په ګزمه دماین چاودني یو تن اربکی قومندان مرګوني ټپي کړ. ۰٦- ۱۲- ۲۰۱۳

### یحی خېلو کې اربکی له مجاهدینو سره یوځای شو

دپکتیکا ولایت په یحی خېلوولسوالۍ کې یو اربکی چې قومندان نومېږي د جلب او جذب کمیسیون د دعوت او سیمه ییزو مجاهدینو دهڅو په برکت له مجاهدینو سره یوځای شو. ۰۸- ۱۲- ۲۰۱۳

### اورګون کې په ټانګ چاودني ۲ عسکر ووژل

د پکتیکا ولایت داورګون ولسوالۍ بازار ته نژدې د اجیري اردو زغروال ټانګ په ماین والوزول شو، په چاودنه کې ټانک ویجاړ او پکې ۲ تنه عسکر ووژل شول. ۰۸- ۱۲- ۲۰۱۳

### یحی خېلو کې اربکی مجاهدینو سره یوځای شو

د پکتیکا ولایت په یحی خېلوولسوالۍ کې یو اربکی عبیدالله د جلب او جذب کمیسیونو د دعوت په برکت داسلامي امارت له مخالفت نه لاس په سر او مجاهدینو سره یوځای شو. ۱۰- ۱۲- ۲۰۱۳

**برمل کې په کمپاین میزایل وارشول**

د پکتیکا ولایت په برمل ولسوالۍ کې د دښمن پـه کمپـاین ۴ میزایل وتوغول شول چې په ټاکلي هدف ولګېدل او له امله یې دښمن ته مالي اوځاني زیان واوښت. ۱۲- ۱۲- ۲۰۱۳

**جاني خېلو کې د اربکیانو په ډزو ۳ ملکيوګړي ټپیان شول**

د پکتیکا ولایت دجاني خېلو ولسوالۍ مر کز ته نژدې اربکیـانو په ملکي موټر ډزې وکړې چې له امله یې ۳ تنه ټپیان شول. پـه ټپیانو کې دوه تنه یې ماشومان دي. ۱۳- ۱۲- ۲۰۱۳

**وازه خوا کې ۱ټانک تخریب او ۳عسکر مړه اوژوبل شول**

د پکتیکـا ولایـت د وازه خـوا ولسوالۍ پـه پخي سـیمه کـې د اجیري اردو په ګزمه چاودنه اوبیا برید ترسره شو، پـه پېښـو کې ۱ ټانک پوره تخریب، ۱عسکر مړ او ۲ نور مرګوني ټپیـان شول. ۱۴- ۱۲- ۲۰۱۳

**برمل کې په ټانګ چاودني ۳ عسکر ووژل**

دپکتیکاولایت د برمل ولسوالۍ په نوي اډه سیمه کې د اجیري اردو زغروال ټانګ پـه مـاین والوزول شو،چاودني ټانک پوره تخریب، ۳ تنه عسکر مړه او ۴ نور ژوبل کړل. ۱۵- ۱۲- ۲۰۱۳

**جاني خېلو کې پوسته تر برید لاندي راغله**

دپکتیکا ولایت د جاني خېلو ولسوالۍ پـه کنزکي سیمه کـې د اربکیانو پـه پوسته وسلوال برید ترسره شو، دبریـد پـه مهـال د پوستې ودانۍ زیانمنه او یکې مېشتو اربکیـانو تـه درنـه مرګ ژوبله واوښته. ۱۴- ۱۲- ۲۰۱۳

**برمل کې پوسته تر برید لاندي راغله**

دپکتیکـا ولایت د برمـل ولسوالۍ پـه شپاژتر لي سیمه کـې د اجیري اردو پـه پوسته وسلوال بریـد ترسره شو،پـه بریـد کـې د پوستې ودانۍ تـه پـه زیـان اوښـتو سربېر عسکرو تـه هـم درنـه مرګ ژوبله واوښته. ۱۵- ۱۲- ۲۰۱۳

**خیر کوټ کې په پوسته برید ترسره شو**

دپکتیکـا ولایـت د خیر کـوټ ولسوالۍ پـه ملیـزو سـیمه کـې داربکیانو په پوسته دوسلوال برید له امله دښمن ته درنه مرګ ژوبله اومالي تلفات واوښتل. ۱٦- ۱۲- ۲۰۱۳

**برمل کې کمپاین په درنو وسلو وویشتل شو**

دپکتیکـا ولایـت دبرمـل ولسـوالۍ پـه کمپـاین د هشـتادد، سپیجنین او دهشکې برید ترسره شو، دبریدله املـه دکمپـاین ودانۍ پـوره تخریـب اویکې مېشتوعسکرو تـه مـرګ ژوبلـه واوښته.ددښمنیه متقابلو ډزو کې یو مجاهد سرسر کې ټپـی شو. ۱٦- ۱۲- ۲۰۱۳

**خیر کوټ کې ماین موټر تخریب او ۲ اربکیان ژوبل کړل**

دپکتیکاولایت د خیر کوټ ولسوالۍ بازار تـه نژدې د اربکیـانو په موټرماین وچاودېد او پوره یې تخریب کړ، پـه دې سر بیـره چاودني ۲ اربکیان سخت ژوبل کړل. ۱۷- ۱۲- ۲۰۱۳

**برمل کې په موټر چاودني ۳ عسکر مړه اوژوبل کړل**

د پکتیکـا ولایـت د برمـل ولسـوالۍ پـه نوي اډه سـیمه کـې د اجیري اردو رېنجر موټر ددرنې چاودني ښکار شو، پـه چاودنـه کې موټر پوره تخریـب، ۱عسـکر مړ او ۲ سـخت ژوبـل شـول. ۱۸- ۱۲- ۲۰۱۳

**یوسف خېلو ولسوالۍ ودانۍ په هشتاددو وویشتل شوه**

د پکتیکا ولایت د یوسف خېلو ولسوالۍ ودانۍ په داسې حال کې د هشتاددو تر برید لاندې راغله چې له ولایت نه هیئت هم راغلی وو، د برید په مهال د هشتاددو ۳ مرمۍ د ولسوالۍ په ودانۍ کې ولګېدلې چې له امله یې دښمن ته زیان واوښت اودراغلي هیئت چارواکي په تېښته بریالي شول. ۲۰- ۱۲- ۲۰۱۳

**خوشامندولسوالۍ په ودانۍ بریدوشو**

د پکتیکا ولایت د خوشامند ولسوالۍ په ودانۍ وسلوال بریـد ترسره شو،دبریدپه مهال دښمن ته درانه تلفات واوښتل خو د اوښتو تلفاتو په اړه دقیق معلومات نشته. ۲۰- ۱۲- ۲۰۱۳

**خوشامندکې په کاروان برید، ۳ موټرویجاړ شول**

د پکتیکا ولایت د خوشامند ولسوالۍ په اسلم شاه کلي او په اډه سیمه کې د دښمن په موټریز کاروان وسلوال بریدونه ترسره شول، په بریدونو کې د دښمن ۳ عرادې غټ موټر پوره ویجاړ او له دې علاوه دښمن عسکروته درنه مرګ ژوبله واوښته. ۲۳- ۱۲- ۲۰۱۳

**خیر کوټ کې په پوسته کې چاودنې زیان اړولی**

د پکتیکا ولایت دخیر کوټ ولسوالۍ مرکز ته نژدې د دښمن په پوسته چاودنه وشوه، د چاودنې له امله د پوستې ودانۍ تخریب شوه او یکې مېشتو عسکرو ته درنه مرګ ژوبله واوښته. په عیني وخت کې د یادې ولسوالۍ په محمدحسن کلي کې د اربکي قومندان سیف الرحمن رینجر موټر په ماین والوزول شو چې له امله یې موټر تخریب او یو تن ساتونکی سخت ټپي شو. ۲۴- ۱۲- ۲۰۱۳

**زیړ ک کې په پوسته برید ترسره شو**

د پکتیکا ولایت د زیړو ک ولسوالۍ په سرو میدان سیمه کې د پولیسو په پوسته وسلوال برید ترسره شو، د برید له امله دښمن ته داوښتي زیان په اړه معلومات نه دي ترلاسه شوي.

۲۵- ۱۲- ۲۰۱۳

**یحی خېلو کې اربکی مجاهدینو سره یوځای شو**

د پکتیکا ولایت په یحی خېلو ولسوالۍ کې یو تن اربکی چې عبدالسلام نومېږي د جلب او جذب کمیسیون د دعوت په پایله کې د اسلامي امارت له مخالفت نه لاس په سر او له مجاهدینو سره یوځای شو. ۲۵- ۱۲- ۲۰۱۳

**پکتیکا سرحوضه کې ماین ۱ اربکی وواژه**

د پکتیکا ولایت د سرحوضې ولسوالۍ په سلطانو سیمه کې د اربکیانو په پلې ګزمه د چره دار ماین چاودنې ۱ اربکی وواژه او یو اربکی یې سخت ژوبل کړ. ۲۷- ۱۲- ۲۰۱۳

**یحی خېلو کې اربکی له مجاهدینو سره یوځای شو**

د پکتیکاولایت په یحی خېلو ولسوالۍ کې یو تن اربکی چې علاالدین نومېږي په متاخېلو کلي کې له مجاهدینو سره یوځای شو. ۲۸- ۱۲- ۲۰۱۳

**خوشامند کې د دښمن په ګزمه برید وشو**

د پکتیکا ولایت دخوشامند ولسوالۍ په محمدخېلو سیمه کې د ګوډاګیو عسکرو په ګزمه وسلوال برید ترسره شو چې په ترڅ کې یې دښمن ته درانه تلفات واوښتل. ۲۸- ۱۲- ۲۰۱۳

**برمل کې ۱ موټر تخریب او ۵ عسکروته مرګ ژوبله واوښته**

د پکتیکاولایت د برمل ولسوالۍ په سپاژتر لي سیمه کې د اجیري اردو په موټریز کاروان چاودنه وشوه او بیا تر وسلوال برید لاندې راغی، د چاودنې او برید له امله ۱ موټر پوره تخریب، ۳ تنه عسکر مړه او ۲ نور مرګوني ټپیان شول. په جګړه کې مجاهد ټپي شو. ۲۹- ۱۲- ۲۰۱۳

**اورمرمای کې یو ضابط مجاهدینو سره یوځای شو**

دپکتیکاولایت په اورمرمای ولسوالۍ کې یو تن ضابط د جلب او جذب کمیسیون د دعوت په پایله کې له مجاهدینو سره یوځای شو. ۲۹- ۱۲- ۲۰۱۳

**خیر کوټ کې په پوسته کې چاودنې ۲ پولیس ووژل**

دپکتیکا ولایت د خیر کوټ ولسوالۍ په ملیر سیمه کې د پولیسو په پوسته کې ماین وچاودېد، د چاودنې له امله د پوستې ودانۍ پوره تخریب او ۲ تنه پولیس پکې ووژل شول. ۳۱- ۱۲- ۲۰۱۳

## خــوست

**علي شیرو کې چاودنې د ۲ پولیسو ژوند واخیست**

دخوست ولایت دعلي شیرو ولسوالۍ په هارون خېلو سیمه کې د پولیسو په پلې ګزمه دماین چاودنې ۲ تنه پولیس مړه او ګڼ نور پولیس ټپیان کړل. ۰۱- ۱۲- ۲۰۱۳

**صبریو کې کمپاین په هشتادوویشتل شو**

دخوست ولایت د صبریو ولسوالۍ په کور کوري سیمه کې ددښمن کمپاین د هشتاددو په ۴ مرمیو دقیق وویشتل شو چې له امله یې دښمن ته درانه مالي اوځاني تلفات واوښتل. ۰۲- ۱۲- ۲۰۱۳

**شیخ امیر کې په کمپاین بریدتر سره شو**

دخوست ولایت د شیخ امیر ولسوالۍ د باړي په سیمه کې ددښمن په کمپاین وسلوال برید تر سره شو، دبرید له امله د کمپاین ودانۍ ته په زیان اوښتو سربېره یکې مېشتو عسکرو ته درنه مرګ ژوبله واوښته. ۰۲- ۱۲- ۲۰۱۳

**صبریو کې ۴عسکر قتل ٦ژوبل شول**

دخوست ولایت د صبریو ولسوالۍ اړوند د ډنډفقیرانو په سیمه کې له اجیر دښمن سره سخته جګړه وشوه، په جګړه کې ددښمن څلور تنه عسکر مړه او شپږ تنه نور سخت ژوبل شول. ۲۰۱۳/۱۲/۳

**صبریو کې دپولیسو په ګزمه بریدوشو**

دخوست ولایت د صبریو ولسوالۍ د ناکام کلي په اړونده سیمه کې د پولیسو په ګزمه وسلوال بریدترسره شوچې په مهال یې دښمن ته درنه مرګ ژوبله واوښته. ۰۴- ۱۲- ۲۰۱۳

**علي شیروکې په موټرچاودني ۴ پولیس مړه اوژوبل کړل**

د خوست ولایت د علي شیرو ولسوالۍ د بتي کمپاین ته نژدې په اړونده سیمه کې د پولیسو موټر په ماین و الوزول شو، په چاودنه کې موټر تخریب ،۱ پولیس مړ او ۲ مرګوني ټپیان شول. ۰۵- ۱۲- ۲۰۱۳

**خوست مرکزته نژدې جلاچاودنو ۱ موټر او ۴ پولیس له منځه یوړل**

دخوست ولایت مرکز ته نژدې په لکڼ سیمه کې د پولیسو په پلي ګزمه ماین وچاودېد چې ۲ تنه یې ځای په ځای ووژل او بل یې سخت ژوبل کړ. دغه راز بله چاودنه په جیلونو سیمه کې د پولیسو په رېنجر موټر وشوه، چاودني موټرپوره تخریب ،۲ پولیس مړه او ۳ نور مرګوني ټپیان کړل. ۱۱- ۱۲- ۲۰۱۳

**دوومندو کې په موټرچاودني ٦ عسکر مړه اوژوبل کړل**

د خوست ولایت د دوو مندو ولسوالۍ په علي والدین سیمه کې د اجیري اردو په رېنجر موټر چاودنه وشوه، په چاودنه کې موټرپه بشپړه توګه ویجاړ، ۲عسکر مړه او ۴ نور مرګوني ټپیان کړل. ۱۲- ۱۲- ۲۰۱۳

**علي شیروکې یوار بکی ووژل شو**

دخوست ولایت په علي شیرو ولسوالۍ مرکز ته نژدې سیمه کې یو تن اربکی (عبدالوارث) د چریکي برید په مهال ووژل شو. ۱۳- ۱۲- ۲۰۱۳

**علي شیروکې پوسته په هاوان وویشتل شوه**

د خوست ولایت د علي شیرو ولسوالۍ په ببر ک تاڼه سیمه کې ددښمن پوسته د هاوان په ۴ مرمیو دقیق وویشتل شوه چې له امله یې دښمن ته مالي اوځاني زیان واوښت. ۱۸- ۱۲- ۲۰۱۳

**صبریو کې د اجیري اردو په ګزمه ماین وچاودېد**

د خوست ولایت د صبریو ولسوالۍ په سروبي سیمه کې د اجیري اردو په پلي ګزمه درنه چاودنه وشوه، د چاودني له امله دښمن ته مرګ ژوبله واوښته خو کره شمېره یې نه ده څرګنده شوې. ۱۸- ۱۲- ۲۰۱۳

**نادرشاه کوټ کې په قرارګاه میزایل وارشول**

دخوست ولایت د نادرشاه کوټ ولسوالۍ دمندزیوصحرا کې د اجیري اردو په قرارګاه ۲میزایل وتوغول شول چې په ټاکلي هدف ولګېدل او له امله یې دښمن ته زیان واوښت. ۲۰- ۱۲- ۲۰۱۳

**صبریو کې پوسته په هاوان وویشتل شوه**

دخوست ولایت د صبریو ولسوالۍ په کور کوري سیمه کې ددښمن پوسته د هاوان په ۴ مرمیو دقیق وویشتل شوه چې له امله یې ودانۍ زیانمنه او یکې مېشتوعسکرو ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰- ۱۲- ۲۰۱۳

**درګۍ کې عسکر ووژل شو**

د خوست ولایت د درګۍ ولسوالۍ د ګربزو په صحرا کې د اجیرې اردو یوتن عسکر د غلچکي برید په مهال ووژل شو. ۲۲- ۱۲- ۲۰۱۳

**صبریو کې په پوسته برید وشو**

د خوست ولایت د صبریو ولسوالۍ په کور کوري سیمه کې د دښمن په پوسته وسلوال برید تر سره شو، د برید له امله د پوستې ودانۍ زیانمنه او یکې مېشتو عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۳- ۱۲- ۲۰۱۳

**خوست مرکز ته څېرمه ماین ۳ عسکر ووژل**

د خوست ولایت مرکز ته نژدې په خوني خوړ سیمه کې د چک غبر ګون په عسکرو چاودنه وشوه، په چاودنه کې ۳ تنه عسکر مړه او ۴ عسکر مرګوني ټپیان شول. ۲۳- ۱۲- ۲۰۱۳

**صبریو کې ماین ۱ پولیس وواژه**

د خوست ولایت د صبریو ولسوالۍ په سروبي سیمه کې د پولیسو په پلي ګزمه د بنخ کړل شوي ماین چاودني یو تن پولیس مړ او یو پولیس سخت ژوبل کړ. ۲۵- ۱۲- ۲۰۱۳

**باک کې چاودني د ۳ عسکرو ژوند واخیست**

دخوست ولایت د باک ولسوالۍ مرکز ته نژدې د اجیرې اردو په ګزمه د درنې چاودني له امله ۳ عسکر ووژل شول او ۳ نور مرګوني ټپیان شول. ۲۵- ۱۲- ۲۰۱۳

**نادرشاه کوټ کې په موټر چاودني ۲ عسکر ووژل**

د خوست ولایت دنادرشاه کوټ ولسوالۍ مرکز ته نژدې د اجیرې اردو رېنجر موټر په ماین والوزول شو، په چاودنه کې موټر پوره تخریب، ۲ عسکر مړه او ۳ نور مرګوني ټپیان شول. ۲۵- ۱۲- ۲۰۱۳

**صبریو کې ماین د ۲ عسکرو ژوند واخیست**

د خوست ولایت د صبریو د زړې ولسوالۍ ودانۍ ته څېرمه د بنخ کړل شوي ماین چاودني ۲ تنه عسکر مړه او ۳ نور عسکر مرګوني ټپیان کړل. ۲۶- ۱۲- ۲۰۱۳

**صبریو کې په کمپاین او پوسته بریدونه شوي**

دخوست ولایت د خولبسات کمپاین د هاوان په ۱۰ مرمیو دقیق وویشتل شو او دغه راز د کور کوري په سیمه کې د پولیسو په پوسته د هشتاددو برید تر سره شو، د بریدونو له امله ودانۍ زیانمنې او یکې مېشتو عسکر ته درنه مرګ ژوبله واوښته. ۲۷- ۱۲- ۲۰۱۳

**خوست کې جلاچاودنو ۸ عسکر ووژل او ۸ یې ټپیان کړل**

د خوست ولایت مرکز ته نژدې د پولیسو په پوسته او رېنجر موټر کې درنې چاودني وشوې. له چاودنو وروسته سیمي ته په اصطلاح دملي امنیت کار کونکي او نور عسکر راغلل او په هغوئ هم ۲ زوروې چاودني وشوې، د چاودنو له امله ٦ پولیس او د جاسوسي اداري کار کونکي او ۲ سپیشل فورس عسکر ووژل شول او ۸ تنه نور مرګوني ټپیان شول. په چاودنو کې یو عراده رېنجر موټر پوره ویجاړ او یو شمېر نور تخریب شول. دغه راز د پوستې ودانۍ هم زیانمنه شوه. ۲۸- ۱۲- ۲۰۱۳

**علي شیرو کې په موټر چاودني ۲ پولیس ووژل**

دخوست ولایت د علي شیرو ولسوالۍ په زواکه سیمه کې د پولیسو رېنجر موټر په ماین والوزول شو چې په پوره ډول تخریب شو، له دې علاوه چاودني ۲ پولیس مړه او ۴ نور مرګوني ټپیان کړل. ۲۹- ۱۲- ۲۰۱۳

**د خوست په باک کې ماین د ۳ پولیسو ژوند واخیست**

د خوست ولایت د باک ولسوالۍ مرکز ته نژدې د پولیسو په پلي ګزمه د بنخ کړل شوي ماین چاودني ۳ تنه پولیس مړه او ګڼ نور پولیس ټپیان کړل. ۲۹- ۱۲- ۲۰۱۳

**علي شیرو کې په موټر چاودني ۲ پولیس ووژل**

د خوست ولایت د علي شیرو ولسوالۍ په زواکه سیمه کې د پولیسو رېنجر موټر په ماین والوزول شو، چاودني موټر تخریب، ۲ پولیس مړه او ۴ نور یې مرګوني ټپیان کړل. ۲۹- ۱۲- ۲۰۱۳

## د خوست په باک کې ماین د ۳ پولیسو ژوند واخیست

د خوست ولایت دباک ولسوالۍ مرکز ته نژدې د پولیسو په پلې گزمه د ښخ کړل شوي ماین چاودنې ۳ تنه پولیس مړه او گڼ نور پولیس ټپیان کړل. ۲۹- ۱۲- ۲۰۱۳

## صبریوو لسوالۍ ودانۍ په نارنجکوو ویشتل شوه

د خوست ولایت د صبریو ولسوالۍ په ودانۍ د نارنجکو برید ترسره شو، د برید له امله دښمن ته د اوښتي زیان په اړه معلومات نه دي ترلاسه شوي. ۳۰- ۱۲- ۲۰۱۳

## علي شیرو کې پوسته په هاوان وو یشتل شوه

دخوست ولایت د علي شیرو ولسوالۍ په ببرک تاڼه سیمه کې د پولیسو پوسته د هاوان په ۴ مرمیو دقیق وویشتل شوه چې له امله یې دښمن ته مالي او ځاني تلفات واوښتل. ۳۰- ۱۲- ۲۰۱۳

# غــازي آباد

## غازي اباد کې په پوسته برید، ۱ موټر تخریب او ۲ عسکروو ژل شول

دغازي اباد ولسوالۍ د سابل زیارت اړونده سیمه کې د دښمن په پوسته برید وشو، د بریدله امله ۱ موټر تخریب او ۲ عسکر ووژل شول، په دې سربېره د پوستې ودانۍ هم زیانمنه شوه. ۰۴- ۱۲- ۲۰۱۳

## غازي اباد کې په بیس بریدو شو

د غازي اباد ولسوالۍ په جلاله سیمه کې ددښمن په بیس وسلوال برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته مالي او ځاني تلفات واوښتل خو په هکله یې شواهد نه دي ترلاسه شوي. ۰٦- ۱۲- ۲۰۱۳

## غازي اباد کې په بیس برید، ۸ عسکرو ته مرگ ژوبله واوښتل

دغازي اباد ولسوالۍ د څونگ لراوبر بیس باندي وسلوال برید ترسره شو، په برید کې ددښمن ۳ عسکر مړه او ۵ تنه نور یې سخت ژوبل شول، په دې سربېره د بیس ودانۍ هم پوره تخریب شوه. ۰٦- ۱۲- ۲۰۱۳

## غازي اباد کې په بیس او پوستو برید، ۱ موټر تخریب او ۵ عسکر مړه او ژوبل شول

دغازي اباد ولسوالۍ د جلاله بیس او سابل په پوستو وسلوال بریدونه ترسره شول. په برید کې ۳ عسکر و خپل ژوند له لاسه ورکړ او ۲ نور سخت ژوبل شول، په دې سربېره یو رېنجر موټر ویجاړ او د بیس او پوستو ودانیو ته پوره زیانونه واوښتل. ۰۸- ۱۲- ۲۰۱۳

## غازي اباد کې په ۲ پوستو برید، ۷ اربکیانو ته مرگ ژوبله واوښته

دغازي اباد ولسوالۍ په باگام او گناره سیمو کې د اربکیانو په پوستو د سپکو او درنو وسلو بریدونه ترسره شول، د بریدونو په مهال ۳ اربکیان مړه او ۴ نور مرگوني ټپیان شول، په دې سربېره ودانیو ته هم پوره زیانونه واوښتل. ۱۰- ۱۲- ۲۰۱۳

## غازي اباد کې په بیس برید زیان واړاوه

د غازي اباد ولسوالۍ د څونک په بیس د سپکو او درنو وسلو برید ترسره شو، د برید له امله دښمن ته درنه مرگ ژوبله او مالي تلفات واوښتل خو په هکله یې دقیق معلومات نشته. ۱۰- ۱۲- ۲۰۱۳

## غازي اباد کې په بیس او پوستو بریدونه شوي

دغازي اباد ولسوالۍ د جلاله په بیس او دفاعي پوستو وسلوال برید ترسره شو، د برید له امله ودانۍ پوره تخریب او یکې مېشتو عسکرو ته درنه مرگ ژوبله واوښته. ۱۲- ۱۲- ۲۰۱۳

## غازي اباد کې په ۲ بیسونو برید، ۴ عسکرو ته مرگ ژوبله واوښته

د غازي اباد ولسوالۍ دڅونک په بیس د هاوان برید ترسره شو چې ۵ مرمۍ یې په منځ کې ولگېدلې، دغه راز په جلاله سیمه کې د دښمن بیس تر وسلوال برید لاندې راغی، په بریدونو کې د

بیسونو ودانیو ته په زیان اوښتو سربېره ۲ عسکر مړه او ۲ نور سخت ژوبل شول. ۱۳- ۱۲- ۲۰۱۳

**غازي اباد کې په بیس برید وشو**

د غازي اباد ولسوالۍ په جلاله سیمه کې د دښمن په بیس وسلوال برید ترسره شوچې له امله یې دښمن ته درانه مالي اوځاني تلفات واوښتل. ۱۸- ۱۲- ۲۰۱۳

**غازي اباد کې په بیس برید وشو**

د غازي اباد ولسوالۍ په جلاله سیمه کې د دښمن په بیس وسلوال برید ترسره شو. په برید کې د بیس ودانۍ زیانمنه شوه او د مرګ ژوبلې په اړه شواهد نه دي ترلاسه شوي. ۲۲- ۱۲- ۲۰۱۳

**غازي اباد کې په پوستو برید، ۲ عسکر مړه او ژوبل شول**

د غازي اباد ولسوالۍ د جلاله سابل په سیمه کې د دښمن په پوستو د وسلوال برید په مهال ۱ عسکر ووژل شو او بل سخت ژوبل شو، په دې سربېره د پوستو ودانۍ هم زیانمنې شوې. ۲۲- ۱۲- ۲۰۱۳

**غازي اباد کې په بیس برید، ۱ عسکر قتل بل ژوبل شو**

دغازي اباد ولسوالۍ د ځونک لراوبر بیس باندي وسلوال برید ترسره شو، په برید کې ۱ عسکر مړ او بل سخت ژوبل شو، په دې سربېره د بیس ودانۍ هم تخریب شوه. ۲۵- ۱۲- ۲۰۱۳

**غازي اباد کې پولیس له مجاهدینو سره یوځای شوی**

د غازي اباد ولسوالۍ په ځونک سیمه کې یو تن سرحدي پولیس (عبدالقدوس) له مجاهدینو سره یوځای شوی. عبدالقدوس دوه میله وسله هم مجاهدینو ته تسلیم کړه. ۲۷- ۱۲- ۲۰۱۳

**غازي اباد کې په پوستو برید، ۱ عسکر ووژل شو**

د غازي اباد ولسوالۍ په جلاله سابل سیمه کې د دښمن په پوستو وسلوال برید ترسره شوچې په مهال یې ۱ عسکر ووژل شو او بل سخت ژوبل شو. ۲۹- ۱۲- ۲۰۱۳

**غازي اباد کې په بیس برید، ۳ عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته**

دغازي اباد ولسوالۍ په جلاله سیمه کې د دښمن په بیس د سپکو او درنو وسلو برید ترسره شو، د برید له امله د بیس ودانۍ ته په زیان اوښتو سربېره ۱ عسکر مړ او ۲ نور مرګوني ټپیان شول. ۳۰- ۱۲- ۲۰۱۳

## غزنی

**په شلګر کې ۱ ټانګ ویجاړ او ۵ عسکر مړه او ژوبل شول**

د غزني ولایت د شلګر ولسوالۍ په چلتن سیمه کې داجیري اردو په ګزمه وسلوال برید ترسره شو. دبرید په ترڅ کې د دښمن ۲ عسکر مړه او ۳ نور سخت ژوبل شول، په دې سربېره ۱ زغروال ټانګ په بشپړه توګه ویجاړ شو. ۰۱- ۱۲- ۲۰۱۳

**غزني مرکزته څېرمه ټانګ دماین ښکار شو**

د غزني ولایت مرکزته نژدې په زاړه پمپ سیمه کې د اجیري اردو زغروال ټانګ په ماین والوزول شو او په بشپړه توګه وسوزېد. ۰۲- ۱۲- ۲۰۱۳

**دغزني مرکزته نژدې ۵ عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته**

د غزني ولایت اړوند په خشک او قلعه قاضي سیمو کې د اجیري اردو په ګزمو هم مهال بریدونه ترسره شول، د بریدونو په ترڅ کې ۵ عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته او په دې سربېره یو عراده رینجر موټر پوره تخریب شو. ۰۲- ۱۲- ۲۰۱۳

**قرباغ کې ۴ اربکیان وژل شوي**

د غزني ولایت د قرباغ ولسوالۍ په شاغولي سیمه کې وچي کلا ته نژدې داربکیانو په ګزمه بریدترسره شو، دبریدپه مهال ۴ تنه اربکیان مړه او ګڼ نور ژوبل شول. ۰۴- ۱۲- ۲۰۱۳

**غزني مرکزته څېرمه ماین د ۲ عسکرو ژوند واخیست**

د غزني ولایت مرکز ته نژدې په کج قلعه سیمه کې د اجیري اردو په پلي ګزمه د ماین چاودني داجیري اردو ۲ تنه عسکر مړه او ګڼ نور ژوبل کړل. ۰۴- ۱۲- ۲۰۱۳

**ګیرو کې ددښمن په کاروان بریدوشو**

دغزني ولايت د ګيرو ولسوالۍ په شيلي سيمه کې د ګډدښمن پـه موټريز کاروان وسلوال بريد ترسره شو، پـه جګړه کې دښمن ته درنه مرګ ژوبله واوښته خو کره شمېره يې نه ده څرګنده شوې. دجګړې په پای کې په سيمه درنه بمباري هم وشوه خو لله الحمد چاته پکې زيان نه واوښت. ۰۴- ۱۲- ۲۰۱۳

**شلګر کې د اجيري اردو په ګزمه بريد وشو**

د غزني ولايت د شلګر ولسوالۍ د ير کتو په سيمه کې د اجيري اردو په ګزمه وسلوال بريد ترسره شوچې پـه مهال يې دښمن ته درنه مرګ ژوبله واوښته. ۰۵- ۱۲- ۲۰۱۳

**غزني مرکزته څېرمه دعسکرو موټرپه ماين والوت**

د غزني ولايت مرکز ته څېرمه په کچ قلعه سيمه کې داجيري اردو رېنجر موټر پـه ماين والوزول شو، په چاودنـه کې موټر تخريب شوخو پکې ناستو عسکرو ته داوښتي مرګ ژوبلي پـه اړه دقيق معلومات نشته. ۰۵- ۱۲- ۲۰۱۳

**شلګر کې ۲ موټر تخريب او ۵ عسکر ووژل شول**

دغزني ولايت د شلګر ولسوالۍ د ابوکلا پـه سيمه کې پـه ګوډاګيـو عسـکرو وسـلوال بريـد ترسـره شـو، په بريـد کې ۵ عسکر مړه او ګڼ نور ژوبل شول، پـه دې سربېره ۲ رېنجر هم پوره تخريب شول. ۰٦- ۱۲- ۲۰۱۳

**په شلګر کې په پوسته بريد وشو**

دغزني ولايت د شلګر ولسوالۍ پـه حبيب ګوډلو سيمه کې ددښمن پوسته دمجاهدينو تر بريد لاندې راغله، دبريدله املـه د پوستې ودانۍ تـه پـه زيـان اوښـتو سربېره ۱ زغروال ټانګ تخريب شو او دښمن ته مرګ ژوبله واوښته. ۰٦- ۱۲- ۲۰۱۳

**دغزني په وغظ کې په قرارګاه ميزايل وار شول**

دغزني ولايت په واغظ ولسوالۍ کې پـه قرارګاه او د قومندانۍ په ودانۍ ۲ ميزايل وتوغول شول چې په ټاکلي هدف ولګېدل او لـه املـه يې دښـمن تـه زيـان واوښـت. دخبر ل مخې ديـادي ولسوالۍ پـه بيلابيلو سيمو کې لـه څلورو ورځو راهيسي د اشغالګرو عسکرو له خوا عمليات روان دي چې تر اوسـه پورې يې ګڼ شمېر خلک بنديان کړل او ګڼو تـه يې مـالي زيانونـه اړولي دي. ۲۰۱۳-۱۲-۰۷

**شلګر کې په پوسته بريد وشو**

دغزني ولايت د شلګر ولسوالۍ پـه حبيب ګوډلو سيمه کې د اربکيانو په پوسته وسلوال بريد ترسره شو، په بريد کې دښمن تـه مـرګ ژوبلـه اومـالي تلفات واوښـتل خـو پـه اړه يې دقيـق معلومات نشته. ۰۸- ۱۲- ۲۰۱۳

**شلګر کې ۴ اربکيانو ته مرګ ژوبله واوښته**

د غزني ولايـت د شـلګر ولسـوالۍ کې پـه نـاني سـيمه کې د وسلوال بريد په مهال ۱ اربکی ووژل شو او ۳ نور سخت ژوبل شول. ۰۸- ۱۲- ۲۰۱۳

**شلګر کې د اربکيانو په ګزمه بريد وشو**

دغزني ولايـت د شـلګر ولسوالۍ پـه رشـيد خېلوسيمه کې د اربکيانو په پلي ګزمـه وسـلوال بريـد ترسره شو، پـه بريـد کې دښـمن تـه داوښـتي مـرګ ژوبلي کـره شـمېر نـه ده څرګنـده شوې. ۰۸- ۱۲- ۲۰۱۳

**وغظ ولسوالۍ په ودانۍ دميزايلو بريد، ۳ پوليس مړه اوژوبل شول**

دغزني ولايت د واغظ ولسوالۍ ودانۍ په ۳ ميزايلو دقيـق وويشـتل شوه چې له امله يې ۱ پوليس ووژل شو او ۲ نور ټپيـان شول، پـه دې سربېره ودانۍ هم پوره تخريب شوه. ۰۹- ۱۲- ۲۰۱۳

**شلګر کې په ګزمه بريد ترسره شو**

د غزني ولايـت دشلګر ولسوالۍ پـه رحـيم خېلو سيمه کې د اجيري اردو او اربکيانو په ګزمـه وسـلوال بريـد ترسـره شوچې په مهال يې دښمن ته درنـه مـرګ ژوبلـه واوښـته. -۱۲- ۲۰۱۳ ۱۰

**دغزني مرکز اړوند يو عسکر ووژل شو**

دغزني ولايت ښار ته نژدې په مسعود چوک کې د چريکي بريد په مهال د اجيري اردو يو عسکر (امين خان) ووژل شو. ۱۰- ۱۲- ۲۰۱۳

**ده يک کې د اجيري اردو ګزمه تر بريد لاندې راغله**

دغزني ولايت د ده يک ولسوالۍ په لغوات سيمه کې د اجيري اردو په ګزمه وسلوال بريد ترسره شو، د بريد له امله دښمن ته داوښتي مرګ ژوبلې په اړه شواهد نه دي ترلاسه شوي او د دښمن په ډزو کې يو مجاهد ټپي شو. ۱۱- ۱۲- ۲۰۱۳

**غزني مرکز ته څېرمه په کاروان بريد، ۱ ټانکروسوزول شو**

دغزني ولايت مرکز ته نژدې په شهباز سيمه کې د دښمن په اکمالاتي کاروان وسلوال بريد ترسره شو، دبريد په مهال ۱ دتيلو ډک ټانکر وسوزول شو او يو موټروان ونيول شو، دبريدپه ترڅ کې په سيمه ددښمن الوتکو درنه بمباري وکړه خو چاته يکې زيان نه واوښت. ۱۱- ۱۲- ۲۰۱۳

**شلګر کې پوسته په هشتاددو وويشتل شوه**

دغزني ولايت دشلګر ولسوالۍ په حبيب ګوډلو سيمه کې د اربکيانو پوسته د هشتاددو په ۲ مرميو دقيق وويشتل شوه، د بريد له امله دښمن ته زيان واوښت خو په اړه يې شواهد نه دي ترلاسه شوي. ۱۳- ۱۲- ۲۰۱۳

**مقر کې د اجيري اردو په ګزمه بريد وشو**

دغزني ولايت د مقر ولسوالۍ په ګداخېلو سيمه کې د اجيري اردو په ګزمه وسلوال بريد ترسره شو، په بريد کې دښمن ته درنه مرګ ژوبله واوښته خو کره شمېره يې نه ده څرګنده شوې. ۱۴- ۱۲- ۲۰۱۳

**شلګر کې په موټر چاودني د ٦ عسکر و ژوند واخيست**

دغزني ولايت دشلګر ولسوالۍ په خارخشه سيمه کې د اجيري اردو په رينجر موټر درنه چاودنه وشوه، چاودني موټر پوره ويجاړ او ٦ تنه عسکر ووژل. ۱۴- ۱۲- ۲۰۱۳

**شلګر کې اربکيانو يو عام وګړی شهيد کړ**

دغزني ولايت د شلګر ولسوالۍ په حبيب ګوډلو سيمه کې وحشي اربکيانو يوتن عام وګړی (عبدالسلام) چې په لاره پلې روان وو په شهادت ورساوه. ۱۵- ۱۲- ۲۰۱۳

**په شلګر کې ۳ عسکرو ژوند له لاسه ورکړ**

دغزني ولايت د شلګر ولسوالۍ په ديوي سيمه کې د اجيري اردو په ګزمه دوسلوال بريد په مهال د اجيري اردو ۳ عسکر ووژل شول او ۴ نور عسکر مرګوني ټپيان شول. ۱۵- ۱۲- ۲۰۱۳

**مقر کې ۷ عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته**

دغزني ولايت د مقر ولسوالۍ په ګداخېلو او لړمه سيمو کې ددښمن عسکر چې سيمو ته دعملياتو لپاره داخل شول له سخت مقاومت سره مخ شول، په نښته کې ۳ عسکر و مړه او ۴ نور مرګوني ټپيان شول اوبالاخره د دښمن عسکر د چورلکو په توسط له سيمې نه په تېښته بريالي شول. ۱۷- ۱۲- ۲۰۱۳

**شلګر کې د ګوډاګي اداري عسکر تر بريد لاندې راغلل**

دغزني ولايت دشلګر ولسوالۍ په رحيم خېلو سيمه کې د ګوډاګي اداري په عسکرو وسلوال بريد ترسره شو چې په مهال يې دښمن ته درنه مرګ ژوبله واوښته. ۱۷- ۱۲- ۲۰۱۳

**غزني مرکز ته نژدې ماين د ۲ عسکرو ژوند واخيست**

دغزني ولايت مرکز ته نژدې په پيرقرضداران سيمه کې داجيري اردو په پلې ګزمه دماين چاودنه وشوه، چاودني ۲ تنه عسکر مړه او ګڼ نور عسکر ټپيان کړل. ۱۷- ۱۲- ۲۰۱۳

**خوګيانو ولسوالۍ ودانۍ تر بريد لاندې راغله**

دغزني ولايت د خوګيانو ولسوالۍ په ودانۍ د سپکو او درنو وسلو بريد ترسره شو چې له امله يې ودانۍ پوره زيانمنه شوه او يکې مېشتو عسکرو ته درنه مرګ ژوبله واوښته. ۱۹- ۱۲- ۲۰۱۳

**ماين دواغظ ولسوالۍ دولسوال معاون ټپي کړ**

دغزني ولايت دواغظ ولسوالۍ په ګودلو سيمه کې د پوليسو په ګزمه چاودنه وشوه او له امله يې د واغظ ولسوالۍ د ولسوال

معاون قديم او يو تن دهغه ساتونکی پوليس سخت ژوبل شو . ۲۱- ۱۲- ۲۰۱۳

**ګيلان کې قرارګاه په هشتاددو وويشتل شوه**

دغزني ولايت د ګيلان ولسوالۍ په اړونده سيمه کې د اجيري اردو قرارګاد هشتاددو په ۴ مرميو دقيق وويشتل شوه،د بريد له امله د ښمن ته درنه مرګ ژوبله او مالي زيان واوښت . ۲۱- ۱۲- ۲۰۱۳

**ګيرو کې په پوسته د درنو وسلو بريد شوی**

د غزني ولايت دګيرو ولسوالۍ په شيله سيمه کې د اربکيانو په پوسته وسلوال بريد ترسره شو، د بريد له امله د پوستې ودانۍ ته په زيان اوښتو سربېره دښمن ته درنه مرګ ژوبله واوښته. ۲۲- ۱۲- ۲۰۱۳

**غزني مرکزته نژدې په موټرچاودني قومندان او ۲ عسکرووژل**

د غزني ولايت مرکزته نژدې په قلعه بيرګت سيمه کې د محبس د دفاعي پوستې د قومندان موټر په ماين والوزول شو، په چاودنه کې موټرپوره تخريب شواود قومندان په شمول ۲ تنه عسکر ووژل شول. ۲۲- ۱۲- ۲۰۱۳

**مقرکې په پوسته بريد، ۳ اربکيانو ته مرګ ژوبله واوښته**

د غزني ولايت دمقر ولسوالۍ په چهار قلعه سيمه کې د اربکيانو د پوستې ديوال لومړی په ماين والوزول شو او بيا په پوسته کې په ميشتو اربکيانو وسلوال بريد وشو، د بريد له امله د پوستې ودانۍ ته په زيان اوښتو سربېره ۱ مړ او ۲ نور مرګوني ټپيان شول. ۲۲- ۱۲- ۲۰۱۳

**شلګرکې ماين د ۲ عسکرو ژوند واخيست او قومندان يې ټپي کړ**

دغزني ولايت دشلګر ولسوالۍ په غبرګون سيمه کې د اربکيانو او اجيري اردو په ګزمه چاودنه وشوه، دچاودني له امله د اجيري اردو ۲ عسکر مړه او اربکيانو قومندان سلطان له يو ملګري سره سخت ژوبل شو.دغه راز ددې ولسوالۍ په يرکتو سيمه کې يرغلګرو ته د ليږد په کاروان وسلوال بريد ترسره شو چې په مهال يې دښمن ته درنه مرګ ژوبله اومالي زيان واوښت. ۲۳- ۱۲- ۲۰۱۳

**ده يک کې د دښمن په ګزمه بريد ترسره شو**

دغزني ولايت د ده يک ولسوالۍ په لغوات سيمه کې د اجيري اردو او اربکيانو په ګزمه وسلوال بريد ترسره شوچې په مهال يې دښمن ته درنه مرګ ژوبله واښته. ۲۴- ۱۲- ۲۰۱۳

**ګيرو کې عسکر مجاهدينو سره يوځای شو**

د غزني ولايت په ګيرو ولسوالۍ کې يوتن عسکر (محمدسرور)د جلب او جذب کميسيون د دعوت په پايله کې له مجاهدينو سره يوځای شو.۲۵- ۱۲- ۲۰۱۳

**مقرکې په خپلمنځي جګړه کې يو اربکی ووژل شو**

دغزني ولايت دمقر ولسوالۍ مرکزته نژدې د اربکيانو تر منځ درنه جګړه وشوه، په جګړه کې د قومندان سيد احمد ورور حاجي محمد ووژل شواو ګڼ نور ټپيان شول. ۲۶- ۱۲- ۲۰۱۳

**آب بندکې ۴ عسکر مجاهدينو سره يوځای شول**

د غزني ولايت په آب بندولسوالۍ کې ۴ تنه عسکر (بازمحمد، ميرزاخان، حسن او مسعود) د دعوت او ارشاد کميسيون د دعوت او سيمه ييزو مجاهدينو د هڅو په برکت د اسلامي امارت له مخالفت نه لاس په سر او له مجاهدينو سره يوځای شول.۲۶- ۱۲- ۲۰۱۳

**واغظ کې د ګډ دښمن په ګزمه بريدوشو**

د غزني ولايت د واغظ ولسوالۍ په احمدخان کلا سيمه کې د ګډ دښمن عسکر تر سخت بريد لاندي راغلل چې په مهال يې دښمن ته درنه مرګ ژوبله واوښته، د بريد په پای کې سيمي ته الوتکي راغلې او د سيمي په باغونو يې درنه بمباري وکړه خو لله الحمد چاته پکې زيان نه واوښت. ۲۷- ۱۲- ۲۰۱۳

### غزني مرکزته څېرمه قومندن ووژل شو او موټر يې وسوزول شو

دغزني ولايت د مرکز اړوند په پښتون اباد سيمه کې د پوستې قومندان (عطاګل) د چريکي مجاهدينو لـه خوا ووژل شو او موټر يې وسوزول شو. ٢٧- ١٢- ٢٠١٣

### مقر کې ٢ اربکيان مجاهدينو سره يوځای شول

د غزني ولايت پـه مقر ولسوالۍ کې ٢ اربکيـان (رحيم الله او قـدرت الله) دحقـائقو پـه درک لـه مجاهـدينو سـره يوځـای شول. ٢٧- ١٢- ٢٠١٣

### خوګياڼو کې په پوليسو بريدوشو

دغزني ولايت د خوګياڼو ولسوالۍ ودانۍ ته نژدې پـه پوليسو چريکي بريد ترسره شو، چې په مهال يې دښمن ته مرګ ژوبله واوښته. ٢٨- ١٢- ٢٠١٣

### ګيرو کې په پوسته بريد ترسره شو

دغزني ولايت د ګيرو ولسوالۍ په شيله سيمه کې د اربکيانو په پوسته بريد ترسره شو، په بريد کې دښمن تـه داوښـتو تلفاتو په هکله دقيق معلومات نشته. ٢٨- ١٢- ٢٠١٣

### آب بندکې په پوسته بريد زيان واړاوه

دغزني ولايـت دآب بنـد ولسوالۍ پـه ړونـده خپلو سيمه کې مجاهدينوپوستې ته ماينونو کېښودل او له انفجار سره سم يې پرې د سپکو او درنو وسلو بريـد پيـل کـړ، دبريد او چاودنو لـه امله د پوستې يو طرف ټول ويجاړ او پکې مېشتو اربکيـانو تـه مرګ ژوبله واوښته. ٢٨- ١٢- ٢٠١٣

### په شلګر کې په ټانګ چاودني د ٥ عسکرو ژوندواخيست

دغزني ولايت د شلګر ولسوالۍ په نظرخان سيمه کې د اجيري اردو پـه زغروال ټانګ د درنـه چاودنـه وشوه، پـه چاودنـه کې ټانک مکمل ويجاړ او پکې ناست ٥ تنه عسکر ټول ووژل شول. ٣٠- ١٢- ٢٠١٣

## کـــابـل

### سروبي کې دښمن يو ملاامام يو کليوال شهيدان کړل

د کابل ولايت دسروبي ولسوالۍ اړونده اوزبين سپير کنډي پـه کلي پر غلګرو داجيروعسکرو په ملتيا دچورلکو په توسط چاپه ووهله، دښمن دچاپې په مهال د کلي ملاامام [مولوي حيـات الله] پـه ډزو شـهيدکړ اويـو تن کليـوال يـې سـخت ژوبـل کړچـې وروسـته دسـختو زخمونولـه املـه پـه شـهادت ورسـېد، انـالله وانااليه راجعون. ٢٠١٣/١٢/٣

### سروبي کې عسکر په دراز کوف وويشتل شو

د کابل ولايت دسروبي ولسوالۍ په اوزبين سيمه کې داجيري اردو يو عسکر په دراز کوف وويشتل شو او ځای پـه ځـای ووژل شو. ٠٤- ١٢- ٢٠١٣

### سروبي کې ٤ اشغالګرو ته مرګ ژوبله واوښته

د کابـل ولايـت د سـروبي ولسـوالۍ د اوزبـين پـه سـپير کونډي سـيمه کـې د ګډدښـمن پـه ګزمـه وسـلوال بريـد ترسـره شو. دبريدپه مهال ١ بهرنی عسکر مړ او ٣ داجيري اردو عسکر ژوبل شول. ٠٤- ١٢- ٢٠١٣

### ده سبزکې ماين موټر او ١٣ اشغالګر له منځه يوړل

دکابل ولايت د ده سبز ولسوالۍ په بختيارو کلي اړونده سيمه کې د اشغالګرو عسکرو کروزين موټر په ماين والوزول شو، په چاودنـه کې موټر تخريب او پکې ناست ٣ تنـه عسـکر ووژل شول. ٠٦- ١٢- ٢٠١٣

### سروبي کې ددښمن پوسته فتحه او قومندان يې سخت ټپي شو

دکابل ولايت د سروبي ولسوالۍ په شينلو سيمه کې د اربکيـانو په پوستو يو لړ عمليات ترسره شول چې پـه ترڅ کې يې يوه پوسته فتحه شوه، په پوسته کې يو تن قومندان (کوچي) سخت ټپي شو او ګڼو نورو اربکيـانو تـه هـم مـرګ ژوبلـه واوښـته. ٠٦- ١٢- ٢٠١٣

### سرای خواجه کې دتیلو ټانکر دماین خوراک شو

دکابل ولایت د سرای خواجه ولسوالۍ په باغ والي سیمه کې د اکمالاتي کاروان د تیلو ټانکر دماین خوراک شواوپه بشپړ ډول تخریب شو. ۰۷- ۱۲- ۲۰۱۳

### سروبي کې له دښمن سره نښته وشوه

د کابل ولایت دسروبي ولسوالۍ په اړونده سیمه کې د اجیري اردو له عسکرو سره درنه نښته وشوه چې په مهال یې دښمن ته درنه مرګ ژوبله واوښته، دجګړې په پای کې په سیمه درنه بمباري هم وشوه خو چاته پکې زیان نه واوښت. ۰۸- ۱۲- ۲۰۱۳

### د الماني عسکرو په مرکز فدایي برید ۱۰ تنو بهرنیوته مرګ ژوبله واړوله

دکابل ولایت په ښار کې د ۱۵ مې حوزې اړوند قصبې سیمه کې د الماني یرغلګرو په یوه مرکز د قهرمان مجاهد( محمود)لخوا دیوه لنډکروزر موټر په وسیله فدایي برید ترسره شو. دبرید په نتیجه کې له مرکز نه ۲ راوتونکي نظامي موټر چې المانیان پکې سپاره ول په مکمل ډول ویجاړ او له دې علاوه د مرکز نظام قراول، دروازه او ودانۍ پوره زیانمني او ۱۰ تنو خارجیانو ته مرګ ژوبله واوښته. ۱۱- ۱۲- ۲۰۱۳

### بګرامیو کې د پولیسو موټر په ماین والوت

د کابل و لایت دبګرامیو ولسوالۍ په حسین خېلو سیمه کې د پولیسو رینجر موټر په ماین والوزول شو، په چاودنه کې موټر پوره تخریب او یو پولیس پکې ټپي شو. ۱٦- ۱۲- ۲۰۱۳

### چهار اسیاب کې ټانکر دماین خوراک شو

د کابل ولایت دچهار اسیاب ولسوالۍ مرکز ته نژدې د اکمالاتي کاروان ټانکر موټر په ماین والوزول شو، دچاودني له امله ټانکر اور واخیست او په بشپړه توګه وسوزېد. ۱٦- ۱۲- ۲۰۱۳

### سروبي کې په کاروان او پوسته بریدونه شوي

دکابل ولایت دسروبي ولسوالۍ د وریښمین تنګي په سوري تیګه سیمه کې د دښمن په کاروان او پوسته وسلوال بریدونه ترسره شول، د بریدونو له امله د پوستې ودانۍ زیانمنه، ۲ ټانګ تخریب او عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته. ۱۹- ۱۲- ۲۰۱۳

### کابل کې د جاسوسي اداري کارمند ووژل شو

د کابل ښار اړونده په دارالامان سیمه کې د جاسوسي اداري کارمند (حبیب) دغلچکي برید په مهال وویشتل شو او ځای په ځای ووژل شو. ۲۰- ۱۲- ۲۰۱۳

### سروبي کې په موټرچاودني ۲ عسکر ټپیان کړل

د کابل ولایت د سروبي ولسوالۍ د اوزبین په حسن خېلو سیمه کې د ګوډاګۍ اداري د عسکرو موټر په ماین والوزول شو، چاودني موټر تخریب او ۲ تنه عسکر سخت ژوبل کړل، دغه راز د اوزبین په سیمه کې د دښمن د بیس په پلیو عسکرو هم وسلوال برید ترسره شو چې په مهال یې دښمن ته درنه مرګ ژوبله واوښته. ۲۰- ۱۲- ۲۰۱۳

### سروبي کې د اربکیانو پوسته وسوزول شوه

د کابل ولایت دسروبي ولسوالۍ د ټولي اول او دوهم تر منځ په ناهکي سیمه کې د اربکیانو په پوسته وسلوال برید ترسره شو، دبرید په مهال پوسته وسوزول شوه او ساتونکي یې په تېښته بریالي شول. ۲۲- ۱۲- ۲۰۱۳

### قرباغ کې د دښمن په چورلکو راکټي بریدو شو

د کابل ولایت د قرباغ ولسوالۍ په قلعه بي بي سیمه کې د اشغالګرو عسکرو په چورلکو راکټي برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته د اوښتو تلفاتو په هکله دقیق معلومات نشته. ۲۳- ۱۲- ۲۰۱۳

### سروبي کې ۱۰ عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته

د کابل ولایت دسروبي ولسوالۍ په انګور تاک سیمه کې د ګډ دښمن له عسکرو سره خونړۍ جګړه وشوه، دجګړې په ترڅ کې ۴ عسکر مړه او ٦ تنه نور سخت ژوبل شول. ۲۴- ۱۲- ۲۰۱۳

### دامریکاسفارت او دناټو قومندانۍ په توغندیو وویشتل شول

د کابل ولایت د ښار په زړه کې د امریکا سفارت او د ناټو په قومندانۍ ۴ توغندي وتوغول شول چې په نښنه شوي ځای ولګېدل، د برید له امله دښمن ته ځاني او مالي تلفات واوښتل خو په هکله یې شواهد نه دي ترلاسه شوي، کله چې هغې سیمې ته چې ترې په یادو مرکزونو توغندي وتوغول شول ګڼ، اربکیان راغلل چاودنه پرې وشوه او ۴ تنه یې ځای په ځای ووژل.۲۵- ۱۲- ۲۰۱۳

### داکمالاتي کاروان په تمځای کې چاودنو ۸ ټیلر او ۸ ټانګونه له منځه یوړل

د کابل ولایت د ښار اړونده د پلچرخي د تلاشي ځنځیر ته نژدې د اشغالګرو د اکمالاتي کاروان په تمځای کې په ولاړو ټېلر موټرانو دچسپکي ماینونو چاودني وشوې او ور سره سم په تمځای او ساتونکو عسکرو یې وسلوال برید ترسره شو، په دواړو پېښنو کې د دښمن ۸ ټیلر موټران چې ۸ زغروال ټانګونه پکې بار وو وسوزېدل او یو ګڼ شمېر نور نیمه ویجاړ شول، په دې سربېره د تمځای ساتونکو ته هم درنه مرګ ژوبله واوښته. ۲۷- ۱۲- ۲۰۱۳

### فدایي برید کې ۱۲ اشغالګر قتل ګڼ شمیر ټپیان ۴ کروزین موټر ویجاړ شول

د کابل ولایت د نهمې حوزې اړوند په سرک نو سیمه کې د یرغلګرو د یو میلمستون (فنکس) سره نژدې د اشغالګرو په کاروان دفدایي مجاهد حبیب الرحمن له لوري د کرولا موټر په توسط فدایي برید ترسره شو، د برید له امله د اشغالګرو ۴ کروزین موټر په بشپړه توګه ویجاړ او ۱۲ تنو بهرنیو عسکرو خپل ژوند له لاسه ورکړ. ۲۷- ۱۲- ۲۰۱۳

### چهار اسیاب کې د پولیسو موټر په ماین والوت

د کابل ولایت د چهار اسیاب ولسوالۍ د للندر په سیمه کې د پولیسو رېنجر موټر په ماین والوزول شو، په چاودنه کې موټر تخریب او ۲ تنه پولیس پکې ټپیان شول. ۲۷- ۱۲- ۲۰۱۳

### د جاسوسي ادارې په موټر چاودني ۴ تنه ټپیان کړل

د کابل ولایت د ښار اړونده په دارالامان سیمه کې د جاسوسي ادارې د کارمندانودوه موټرو په ماینونو والوزول چې په پوره ډول تخریب شو، په چاودنو کې د دغې ادارې ۴ تنه کارمندان مرګوني ټپیان شول. ۲۷- ۱۲- ۲۰۱۳

### سروبي کې چاودني قومندان ۵ عسکر ټپیان کړل

د کابل ولایت دسروبي ولسوالۍ د جګدلک په فرمان خېلو سیمه کې د ګوډاګیو عسکرو په ګزمه چاودنه وشوه، په چاودنه کې د سروبي د پوستو عمومي قومندان ډاکټر طالب له ۵ تنو ملګرو سره سخت ژوبل شو. ۳۰- ۱۲- ۲۰۱۳

### سروبي کې د پولیسو ګزمه تر برید لاندې راغله

د کابل ولایت د سروبي ولسوالۍ د اوزبین په چهل ګزي سیمه کې د پولیسو په ګزمه وسلوال برید ترسره شوچې په ترڅ کې یې پولیسو ته مرګ ژوبله واوښته. ۳۱- ۱۲- ۲۰۱۳

## کاپیسا

### حصه دوو لسوالۍ، په ودانۍ او دفاعي پوسته بریدونه وشول

د کاپیسا ولایت د حصه دو ولسوالۍ په ودانۍ او دفاعي پوسته وسلوال بریدونه ترسره شول چې له امله یې دښمن ته درانه مالي او ځاني تلفات واوښتل. ۰۳- ۱۲- ۲۰۱۳

### نجراب کې په پوسته برید، ۳ عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته

د کاپیسا ولایت د نجراب ولسوالۍ په افغانیه سیمه کې د حاجیانو د کلي په پوسته وسلوال برید ترسره شو، په برید کې ۱ عسکر ووژل شو او ۲ نور ژوبل شول، په دې سربېره ودانۍ هم تخریب شوه. ۰۵- ۱۲- ۲۰۱۳

### کوه بند کې پوسته تر برید لاندې راغله

د کاپیسا ولایت د کوه بند ولسوالۍ په پول میرویس سیمه کې ددښمن په پوسته وسلوال برید ترسره شوچې له امله یې دښمن ته درانه تلفات واوښتل. ۰۵- ۱۲- ۲۰۱۳

### تګاب کې په برید برید ترسره شو

